
العربية بالراديو
دراديوله لارى دعربى ژبى زده كړه
الكتاب الأول جـ١ وجـ٢ پشتو
الدروس من ١ - ٢٧
له ١ - ٢٧ درسونه
١ - ٢
لمړى كتاب : پشتو
د مصر دعربى جمهوريت دراديو خپرونى

د مصر دعربی جمهوریت درادیو خپرونی

# العربية بالراديو

## درادیوله لاری په پښتوژبه دعربی ژبی زده کړه

لمړی کتاب - لمړی ټوک

**قاهره**

**٢٠٠٤**

الف هذا الكتاب بالعربية :

الأستاذ الدكتور / السيد يعقوب بكر

الأستاذ / محمد شفيق عطا

الأستاذ / سيد محمد العزاوى

الترجمة إلى البشتو : عبد البصير محبى

مراجعة اللغة العربية : استاذ / صبرى على رمضان

الرسوم بريشه الفنان / محمد قطب

---

په عربى ژبه ددى كتاب ليكونكى:

أستاذ داكتر / السيد يعقوب بكر

أستاذ / محمد شفيق عطا

أستاذ / سيد محمد العزاوى

پښتوته ته ژباړه : عبد البصير محبى

دعربى ژبى مراجعه كونكى: استاذ / صبرى على رمضان

رسمونه : دهنر مند محمد قطب

## وربښل (اهداء)

داکتاب هغو کسانوته وړاندی کیږی چه غواړی عربی زبه زده کړی . همداراز هغو کسانوته وربښل کیږی چه دعربی تمدن او ثقافت له مطالعه کولوسره علاقه مندی لری اوغواړی چه دعربی له نهضت سره خپل تفاهم اودوستانه اړیکی پیاوړی کړی .

بسم الله الرحمن الرحیم

## سریزه

زبه دثقافت دراکړې ورکړې اوتبادلې یوه وسیله اودولسوترمنځ دمفاهمې اواړیکو دپیاوړې کید وړواساسي عامل دی له دی امله دمصر دعربی جمهوریت رادیو داسیا ، افریقا ، اروپا اوشمالی اوجنوبی امریکا په لو یووچوکی داوریدونکود غوښتنوپه اساس تصمیم ونیولی چه درادیو له لارې دعربی ژبې تعلیم اوزده کړه خپره کړي ، اوددې کاردترسره کولو دځرنګوالی دپاره یی لمړی یوخاص هیئت جوړکړ چه په هغه کې ډاکتر سلام حامد ، ډاکتر قدری لطفی ډاکتر محمد رشاد رشدی او ډاکتر عبد العزیز عتیق غړیتوب لری .

دغه هیئت وروسته له دې چه ددرسوپروګرام یې تیارکړ هغه یې یوې اجرایی کمیټې ته وړاندې کړچه په هغې کې ډاکترقدری لطفی ډاکتر محمد رشدی ، ډاکتر البرت جورجی عبد الله او استاذ عبد الله اسماعیل او استاذ عبد الظاهر مبروک غړیتوب لری ، دهغوی دزیاروتتیجه همداکتاب دی چه اوس ستاسی په لاسی کی دی:

له رادیو څخه دعربی ژبی زده کړه .(لمړی کتاب )

داکتاب په څلوروبرخو ویشل شوی دی

لمړی برخه له ( ۱- ۱۸ ) درس پوری ده چه دعربی توروپه شکل او تلفظ پوری اړه لری .

دومه برخه له (۱۹ - ۲۷ ) درس پوری ده اودتوروپه حرکتو زور ، زیر پیښ ،شد او تنوین او تعریف په حروفو ( ال ) پوری اړه لری

دریمه برخه له ( ۲۸ - ٤۰ ) درس پوری ده چه په اسمی جملو پوری اړه لری

ځلورمه برخه له ( ٤١ - ٥١ ) درس پوري ده او په فعلي جملو پوري اړه لري اودهري برخي په پای کی دنويو کلمو دمعنی ګانو دپاره يولست تيار شوی دی داکتاب درادیو له درسو سره داوريدونکو دقاس کړی ده له دی کبله مونږ ددی وړانديزکوو چه هراوريدونکی ددرسو داوريد وپه وخت کی ددی کتاب يوه نسخه له ځان سره ولری .



## مقـــدمه

زبه دنړۍ دولسوله تمدن او ثقافت سره دپېژند ګلوی درڅخه اودبشر له علمی او ثقافتی تجربو څخه دګټې اخیستلودموقع برابرونکی ده ، نن ورځ له اسیا څخه ترشمالي افریقا پورې او له خلیج څخه داتلانتیک ترسمندرپورې څوسوه ملیونه خلك په عربي ژبه غږیږي ، عربي ژبه دسعودي عربستان ، اردن ، فلسطين سوريې، لبنان عراق ،دمصر دعربي جمهوريت دسودان داکثرويرخو (دنیل له رودڅخه دچادترهیواده پورې ) لیبیا ، تونس ، الجزایر ، مراکش ، موریتانیې ، دلویدیځې افریقا او شمالی صحراء او افریقا دځینې لروسیمو لکه زنګبار او جیبوتی ژبه ده او همداراز دمالتې او اسپانیې په شان داروپا ځینې برخې په دې ژبه غږیږي .

له هغه وخته راهیسې چه قران کریم په رسول اکرم محمد صلی الله علیه وسلم باندې نازل شوی دی اسلام دعربي ژبې په خپریدوکې لوی رول په غاړه اخیستی دی او دپښتو او فارسی په ګډون یې په نورو اسلامی ژبو باندې ښکاره تأثیر کړی دی ، عربي ژبه دمسلمانا نوژبه ده اوکه چیرته په دغې ژبه ښه پوه شو نود پاك خدای کلام (قران کریم ) چه دژوندیوانځنی صحیح او اساسی قانون دی لکه ځرنګه چه لوی خدای غوښتی همغسې واورواوپرې پوه شو.

په عربي ژبه باندې چه دوحیې ژبه ده پوهیدل ددې دپاره ډیر ضروری دی چه دپاك خدای دکلام او دحضرت رسول اکرم ﴿صلى الله عليه وسلم﴾ دحدیثو او د فقهاوو اواماما نودخبروپه ژوره معنی پوه شو اود اسلامی علومو ثقافتواوهنرونه تاريخ سره پېژند ګلوی پیداکړو عربي ژبې دافغانستان په علمی او ادبی دګروکې له پخوا څخه خاص اهمیت درلودسره له دې چه داکتاب مخکې بیلوژبوته ژباړه شوی خو پښتوژبې ته نه دی ژباړه‌شوی .

دم دع ، ج درادیو دپښتو خپروتی اوریدونکوتل دعربي ژبې له زده کولوسره پاملرنه شکاره کوله

او دی کار اړونده واکمنان دیته راوهڅول چه داکتاب تیار کړی ، اوزه په دی

باندی لوی خدای ته شکرکوم چه ماته یی توفیق راکړچه ددی کتاب دژباړ

لرخدمت اداء کړم ترڅوزه هم پخپل وارسره وکولی شم چه په دی گټوره لارکی

یوگام واخلم .

له دی امله دا ضروربولم چه ددرسوله پیل کیدونه مخکی عربی توری وپیژنو:

دعربی ژبی توری : - دعربی ژبی توری ۲۸ توری دی او هغه دادی :-

الف : الف دعربی ژبی دهجا یا الفبا لمړی توری دی چی له همزی سره

داستفهام دتوری په ډول داسمیی جملی ، او فعلیی جملی پرسرکی راځی

(اودجملوپه حساب کی یوحسا بیږی:

ب : باء دالفباء دوم توری اومؤنث دی (اودجملوپه حساب کی دوه بلل

کیږی)چه له قمری توروو اودجر له حرفوڅخه دی باء په لاندی ځایوکی په کاراچوله

کیږی:-

١- دلازمی فعل دمتعدی کولودپاره لکه «ذهب الله بنورهم» قرآن کریم پاك

خدای دهغوی رڼا اونور یوړ.

۲ - دواسطی په ډول لکه « قطعتُ بالسکین » دچړی په واسطه می پری کړ

۳ - دسببیت دپاره لکه « فکلاً أخذنا بذنبه » (قرآن کریم ) نوهریو موږهغه

دگناه په سبب ونیو .

٤ - دملگرتیا (ملتبا ) دپاره لکه « ادخلوها بسلام آمنین » قرآن کریم « تاسی

له سلامتی سره ورننوزی .

۵ - دزمانی دظرف دپاره لکه« نجیناهم بسحر »( قرآن کریم) موږ هغوی ته دسهار

په وخت کی نجات ورکړ .

٦ - دمکانی ظرف دپاره لکه «ولقد نصرکم الله ببدر»(قرآن کریم) الله تعالی
تاسی ته په بدر کی بری درکړ.

٧ - دبدل دپاره لکه « لیت لی بزید رجلاً عالما » کاشکی ما دزید په ځای عالم
سړی درلودای

٨ - دعوض اوبرابری دپاره لکه «وشروه بثمن بخس دراهم معدودة » (قرآن کریم)
هغه ئی دکمی بیی په برابرکی په څوکمو درهمورا ونیو.

٩ - دمجاوزت دپاره (له) یا(عن) په معنی لکه «فاسأل به خبیراً » ( قرآن کریم)
نوته له هغه ښخه له شه پوه ( ماهر ) نه پوښتنه وکړه .

١٠ - دتبعیض دپاره دمِن (له) په معنی لکه « عینا یشرب بها عباد الله »
(قرآن کریم ) یوه چشمه ده چه له هغی څخه دخدای بندګان څښاك کوی .

١١ - داستعلاء دپاره د ( علی ) یا ( پر ) په معنی لکه « إن تأمنه بدینار
لایؤدّه إلیك » (قرآن کریم ) که چیرته یی ته په یوه دینار باندی امین
وګرځوی نوتاته یی نه اداء کوی .

١٢ - دقسم دپاره « أُقسم بالله » قسم په خدای

١٣ - دغایی دپاره د إلی (ته) په معنی لکه « أحسن بی » ماته یاله ماسره یی
نیکی وکړه

ت : تاء دالفبا دریم توری دی چه مؤنث او شمسی توری دی ( او دجملی په
حساب کی ٤٠٠ ګڼل کیږی )

تا دجرحرف دی چه دقسم دپاره استعما لیږی لکه « تالله » قسم په خدای دی
همدار ازد افعالو په آخیرکی دتأنیث دساکنی علامی په ډول راځی لکه :-
«قامت مریم » مریم پاځید له .

دتاء توری دمربوطی ت په شکل دکلمی په اخیرکی هم راځی

او اکثره وخت له هغی نخخه په هاء تعبیرکیږی او د (هاء)
په شکل لیکل کیږی .
تاء دوقف په حالت کی هاء تلفظ کیږی .
تاء د مضارع یو حرف دی لکه «تذهب» اودماضی فعل په اخیرکی دمتکلم او
مخاطب ضمیر په ډول راځی لکه «قمتُ» «قمتَ» «قمتُما» و «قمتُم»
.
ث : ثاء دالفبایا هجا څلورم توری دی چه مؤنث دی او هغه ته منسوب اسم ثائی
دی ( اود جملو په حساب کی ۵۰۰ گڼل کیږی) .
ج : جیم دهجا پنځم قمری توری دی چه کله مذکر اوکله مؤنث وی ( اودجملوپه
حساب کی له دروسره برابریږی) .
ح : حاء دهجاء شپږم اوقمری توری دی چه کله مذکر اوکله مؤنث وی (اودجملوپه
حساب کی له اتوسره برابریږی
خ : خاء دهجاء اوم توری دی چه کله مذکر اوکله مؤنث وی او قمری توری بلل
کیږی ( اوپه جملوکی له ۶۰۰ سره برابریږی )
د : دال دهجاء اتم توری دی چه مؤنث اوشمسی توری دی (اودجملوپه حساب کی
۴ حسابیږی )
ذ : ذال دهجانهم مؤنث او شمسی توری دی (اودجملوپه حساب کی ۲۰۰ بلل
کیږی)
ر: راء دهجاء لسم او مؤنث او شمسی توری دی (اودجملوپه حساب کی له ۲۰۰
سره برابریږی)
ز : زاء دهجاء یوولسم شمسی توری دی (اودجملوپه حساب کی ۷ دی ) .
س : سین دهجا دوولسم او شمسی توری دی چه مذکر اومؤنث دی (اودجملو په

حساب کی له ۶۰ سره برابریږی) سین دمضارع فعل په سرگی راځی اوپه راتلونکی وخت کی دفعل دپیښیدو معنی ورکوی لکه (فسیکفیکهم الله وهو السمیع العلیم» نو الله تعالی به هغوی له تاڅخه منی کړی اوهغه ډیرښه اورید ونکي او ډیرعالم ذات دی (قرآن کریم).

ش : شین دهجا ۱۳ توری او شمسی توری دی (اودجملوپه حساب کی له ۳۰۰ سره برابرېږی)

ص : صاد دهجا۱٤ توری دی چه مؤنث او شمسی دی (اودجملوپه حساب کی له ۹۰ سره برابریږی)

ض : ضاد دهجا ۱۵ توری اومؤنث او شمسی توری دی اوعربی ژبی ته د ضاد ژبه ویله کیږی (اودجملوپه حساب کی له ۸۰۰ سره برابریږی).

ط : طاء دهجاء شپاړسم او شمسی اومؤنث توری دی (اودجملوپه حساب کی له ۹ سره برابریږی)

ظ : ظاء دهجاء او لسم توری دی چه مؤنث او شمسی دی (او دجملوپه حساب کی له ۹۰۰ سره برابریږی)

ع : العین دهجاء اته لسم او قمری توری دی (چه دجملوپه حساب کی له ۷۰ سره برابردی)

غ : الغین دهجاء نولسم توري دی چه مؤنث او قمری توری دی (اودجملو په حساب کی له زروسره برابردی).

ف : الفاء دهجاء شلم توری دی چه مؤنث او قمری توری دی (اودجملو په حساب کی له ۸۰ سره برابردی)

فاء په لاندې ځایو کې استعمالیږي :

۱- دعطف دپاره لکه «خلقك فسواك فعدلك »« قرآن کریم» ته یې پیداکړې بیایې برابرکړې او بیایې سم کړې .

۲- دشرط په جمله کې راځي اوکه دشرط جواب په یوه واقعیت اوحال دلالت وکړي نود شرط دجواب په سرکی دفاء راتلل واجب دی لکه « وان یمسسك بخیر فهو علی کل شئ قدیر» «قرآن کریم » که چیرته تاته خیر دروررسوی نوهغه په هرشی شه قدرت لري.

۳- زیاتی وی اوپه تاکید دلالت کوی اودخبرپه سرکی راځي لکه « قل إن الموت الذی تفرون منه فإنه ملاقیکم» (قرآ ن کریم) ته ووایه چه هغه مرگ چه تاسی له هغه څخه تیښتی نوهغه له تاسی سره گوری .

ق : القاف دهجایورویشتم اومؤنث او قمری توری دی (اودجملوپه حساب کی له سلوسره برابردی)

ك : الکاف دهجاء دوه ویشتم اومؤنث او قمری توری دی (اودجملوپه حساب کی له شلو سره برابردی) داتوري دجرحرف دی چه پنځه معنی گانی لری

۱- تشبیه لکه (زید کالأسد) زید لکه زمری غوندی دی

۲- تعلیل لکه « واذکروه کما هداکم » (قرآن کریم) له دی کبله چه تاسی ته یی هدایت کړی دهغه ذکر وکړی (هغه یادکړی)

۳- استعلاء لکه «أصبحت کخیر» دخیرپه شان وگرځیدم (په نیکی مي روبه وکړم)

٤- مبادرت او ابتداء داپه هغه صورت کی چه له ماسره متصل شی لکه (سلّم کما تدخل وصلّ کما یدخل الوقت) ځرنگه چه ننوزی سلام واچوه او ځرنگه چه وخت داخل شی لمونځ وکړه.

۵- تاکیدیه دی صورت کی کاف زیاتی وی لکه «ولیس کمثله شئ» (قرآن کریم) هیڅ شئ دهغه په شان نشته.

کاف دمذکر اومؤنث مخاطب دپاره منصوب ضمیر هم دی لکه « أُحبك الناس » ته په خلکوگران یې (ته دخلکوخوښیږې)

ل : اللام ، لام دهجا ۲۳ توری دی چه مؤنث أو شمسی توری دی (اودجملو په حساب کی ۳۰ دی)

لام یادجر یا دجزم عامل وی او یا عامل نه وی.

اول دجرلام دلاندی معنی گانودپاره راځی :

۱- استحقاق لکه (الحمد لله والعزة له) حمداوثنا الله لره ده اوعزت هغه لره دی.

۲- اختصاص لکه « الجنة للمؤمنین وجهنم للکافرین» جنت خاص دمؤمنا نودپاره اودوزخ خاص دکافر انودپاره دی.

۳- مالکیت لکه « له مافی السماوات ومافی الأرض » (قران کریم) هغه څه چه په اسمانو اوپه ځمکه کی دی (دالله تعالی ملکیت دی ) الله تعالی دهغو مالك دی.

٤- تملیك لکه « جعل لکم من أنفسکم أزواجا » (قرآن کریم) تاسی ته یی ستاسی له نفسو څخه جوړی یامیړه او ښځه درکړی او گر ځولی دی .

۵- تعلیل لکه « لإیلاف قریش إیلافهم رحلة الشتاء والصیف» (قرآن کریم) دقریشوترمنځ دالفت له کبله دژمی اواوړی په مسافرتو کی دهغوی ترمنځ الفت راوستی دی.

٦- دنفیی کولو تاکید لکه « ماکان الله لیطلعکم علی الغیب» (قرآن کریم) الله تعالی به تاسی په غیب باندی خبر نکړی.

۷- د إلى په معنى لکه « بأنّ ربك أوحى لها » (قرآن کريم) ستا پروردگار هغې ته وحيه کړې.

۸- د على په معنى لکه « يخرّون للأذقان » (قرآن کريم) په زنيوباندې راپريوزي.

۹- د في په معنى لکه « ونضع الموازين القسط ليوم القيامة » قرآن کريم دقيامت په ورځ دعدل تلې پردو.

۱۰- دعن په معنى لکه « وقال الذين كفروا للذين آمنوا لوكان خيرا ماسبقونا إليه » ( قرآن کريم) کافرانو دمؤمنا نوپه هکله وويل چه که چيرته خير واي نوله موږنه (مخکې به هغه ته نه واى ورغلى) به يې هغه ته سبقت نه واى کړي.

دوم – اما په هغه صورت کې چه لام دجزم عامل وي دطلب (أمر) دپاره راځي او مکسوروي اوله فاء او و اونه ورروسته لام غالبا ساکن وي

دريم – اما په هغه صورت کې چه لام عامل نه وي تل زور لري.

م :(الميم) دهجا ۲٤ توري دې چه مؤنث او قمرى دي (اودجملوپه حساب. کې له ٤٠ سره برابردي) ميم په لاندې ځايوکې استعماليږي:

۱- په جمع مذکر مخاطب باندې دلالت کوي (ذلكم خير لكم) داستاسي دپاره خيردى.

۲- د استفهام اسم دی چه دجر له حرفو ورروسته راځي لکه (بِمَ) په څه شي (لِمَ) دڅه شي دپاره(ولې)

۳- په جمع مذكر غايب کې استعماليږي (زارهم وشكر سعيهم) دهغوی کتنه يې وکړه اود هغوی له هلو ځلو څخه يې مننه وکړه.

ن : نون دهجاپنځه ويستم مؤنث توري دی ( چه دجملوپه حساب کې ٥٠ دي) ځانګړی نون په پنځو ډولو استعماليږي

۱- دتاکیدنون لکه «لیُسجَنَنَّ ولیکوناً من الصاغرین» (قرآن کریم) هر ومرویه بندی شي او هرومرو به ذلیل شي.

۲- دتنوین نون: هغه زائد اوساکن نون دی چه دکلمي په اخیر کی راځی اوله هغه سره دتړلی حرکت له تکر اریدوسره لیکل کیږی لکه (جاء زیدٌ راکباً) زید سپور راغی.

۳- دتأنیث نون. دانو ن یازور لرونکی وی چه له هغه نه مخکی حرف غړوندی (سکون) لری اوپه ماضي، مضارع او امرکی راځی لکه (هن ضربن، اضربن) اوپه دي صورت کی ضمیر وی اوباشد اوزور لرونکی وی.

اوله ضمیر وسره متصل کیږی ترڅو په جمع مؤنث باندی دلالت وکړی لکه (معهن، ضربهن) اوپه دی صورت کی حرف وي.

٤- دوقایی نون: دغه نون ته دعماد نون هم ویل کیږی اود متکلم له منصوبی ی نه مخکی له دی لاندی درو وجو څخه په یوه وجه راځی:

أ - منصرف فعل لکه (ضربنی) ب - جامد فعل لکه (عسانی) جـ - اسم فعل لکه (أنّی).

٥- زاید نون: (دانون دوه ډوله دی: اول هغه نون چه له مضارع فعل سره د مثنی اوجمع اود مؤنث مفرد أو جمع مخاطب فعلو په پای کی نښلول کیږی لکه (یضربان، یضربون، تضربین، تضربان وتضربون).

دوم: هغه نون چه د مثنی اسم او جمع مذکر سالم په پای کي راځی خوپه مثنی کي نون زیر اوپه جمع کی زور لری لکه (الرجلان والمؤمنون) اوکله چه هغه مضاف شي نون خذفیږی لکه (غلاما زید وضاربو عمر)

هـ: هـ دهجاء ۲٦ حرف دی (چه دجملوپه حساب کی له پنځو سره برابردی.

هـ دغائب دپاره متصل ضمیردی چه دنصب او جرپه حالت کی استعمالیږی لکه:

(قال له صاحبه وهو يحاوره) هغه ته دهغه ملگری په داسی حال کی چه له

هغه سره یې مناقشه کوله وویل.

همد اراز ه دتأنیث دپاره دوقف په حالت کی راځی لکه (رحمة)

و : واو دهجاء ۲۷ توری دی چه قمری اومؤنث دي (اود جملوپه حساب کی له ٦

سره برابربږی) واوپه لاندی شکلو راځی

۱- دعطف حرف وی چه یواځی دیو ځای کیدو اوله یوه شي سره دبل شي دعطف

کولودپاره راځی لکه « فأنجیناه وأصحاب السفینة »(قرآن کریم)نوموړ هغه

اود بیړی خاوندا نوته نجات ورکړ

۲- دله سره نیولو توری وی لکه «لنبیّن لکم ونقرّ في الأرحام مانشاء » (قرآن

کریم) ترڅوبی تاسی ته بیان کړو اوپه رحموکي هغه څه ځای په ځای کړوچه

موږ یې غواړو.

۳- واود حال دپاره وی چه په اسمی جمله کی راځی لکه (جاء والشمس طالعة) په

داسی حال کی راغی چه لمر اختلی وو، او دابتداء واوهم ورته ویل کیږی

خوهغه د فعلی جملی په سرکی راځی لکه

(جاء وقد طلعت الشمس ) په داسی حال کی راغی چه لمر او خوت .

٤- واو دجمع مذکر ضمیر دی لکه (الرجال قاموا) نارینه پاڅیدل .

٥- واو دقسم دپاره وی اویواځی دظاهر اسم په سرکی راځی لکه (والقرآن

الحکیم) قسم دی په قرآن حکیم باندی.

ی : ی دهجاء ۲۸ توری دی چه قمري او مؤنث دی (اود جملو په حساب کي له

۱۰ سره برابردی) ی په لاندی حالتو کی استعمالیږی.

۱- دمؤنث دپاره درفع ضمیر لکه ( تقومین وقومي)

۲- دمتکلم ضمیر لکه ( هذبنی معلمی) زمابښونکی ماته تهذیب راکړ.

۳- دنصب او جرپه حالت کې خبر داری او تنبیه لکه (رأیت الرجلین في البیتین) مادوه سرې په دوو کوروکی ولیدل.

٤- دنصب او جرپه حالت کی دجمع مذکر سالم دپاره لکه (المؤمنین)

٥- دنسبت دپاره مشدده ی استعمالیری لکه (الکوفیّ والبصریّ)

پښتوته ژباړونکی: عبدالبصیر محبی

## دعربی ژبی الفبا

ا - ب ، ت ، ث ، ج ، ح ، خ ، س ، ش ، ص ، ض ، ط ، ظ ، ع ، غ ،
ف ، ق ، ك ، ل ، م ، ن ، هـ ، و ، ی

---

### د عربی ژبی کومکی غږونه (حرکتونه)

ـْـ السکون / غږوندی (سکون)

ـَـ الفتحة / زور

ـٰـ الفتحة الطويلة / اوږد زور

آ الهمزة محركة بفتحة طويلة / اوږد الف (مد)

ـِـ الكسرة/ زیر

ـٖـ الكسرة الطويلة / اوږدزیر

ـُـ الضمة / پیښ

وُ الضمة الطويلة / اوږدپیښ

---

ـً الفتحة مع التنوين / دزور تنوين ( دوه زورونه )

ـٍ الكسرة مع التنوين / دزیر تنوين ( دوه زیرونه )

ـٌ الضمة مع التنوين / دپیښ تنوين ( دوه پیښونه )

---

ـَّ الشدة مع الفتحة / له زور سره شد

ـِّ الشدة مع الكسرة / له زیر سره شد

ـُّ الشدة مع الضمة / له پیښ سره شد

ـًّ الشدة مع الفتحة والتنوين / دزورله تنوين سره شد

* الشدة مع الكسرة والتنوين / دزيرله تنوين سره شد
* الشدة مع الضمة والتنوين / دپيش له تنوين سره شد.

ددی کتاب په لړی ټوک کی دامضمونونه راغلی :

دکتاب په دی ټوک کی اته لس درسونه ځای لری چه دعربی تورو په شکل اودهغود تلفظ په ډول پوری اړه لری او په دریو قسمتوویشل کیږی :

١ - له اول څخه تراتم درسه په هغو تورو اودکلمی په اول منځ او اخیرکی دهغو په استعمال اود هغو په حرکتو زور ، زیر پیښ او غږوندی پوری اړه لری چه دهغو تلفظ د نوروژبولهتلفظ سره ورته دی .

٢ - له لسم څخه تردیارلسم درسه په هغو عربی توروا دهغو په بیلو شکلواو حرکتو پوری اړه لری چه دنوروزبو دتورولهٔ تلفظ سره ورته والی لری .

٣ - له څوارلسم څخه تراته لسم درسه په هغو تورو پوری اړه لری چه خاص دعربی ژبی توری دی.

# اَلدَّرْسُ الأَوَّلُ

## لمړی درس

لاندې عکس ته وګورئ

څه شی وینئ

تاسې یوه کورنۍ وینئ



أُسْرَةٌ ←

کورنۍ

پاملرنه : عربي ژبه د پښتو په شان له ښۍ خوا څخه کیڼې خوا ته لیکله کیږي او لوستله کیږي .

کورنی له لاندی کسانوڅخه جوړیږی .




دیته پام ولری چه دعربی لوستل او لیکل له ښی خوا کیږی خواته وی لکه

← أُسْرَةٌ أَبٌ أُمٌّ اِبْنٌ اِبْنَةٌ

کورنی پلار ، مور زوی ، لور ؟

ګورئ دا په مولیدلی وی چه تیری کلمې نکره دی چه الف او لام نلری ، خوکه په عربی ژبه کی وغواړو چه نکره کلمه معرفه کړو دهغې په اول کې (ال)پکښې ورزیاتوولکه :-




أُسْرَةٌ ـ اَلْأُسْرَةُ  أَبٌ ـ اَلْأَبُ  أُمٌّ ـ اَلْأُمُّ  اِبْنٌ ـ اَلِابْنُ  اِبْنَةٌ ـ الاِبْنَةُ

لطفا داکلمی بیابیا ووایاست :

دکورنی هرغړی ته داشاری دپاره له دغوکلمو څخه استفاده کوو:

هَذَا یا هَذِهِ

په دی ډول کله چه وغواړو چه پلارته چه په لاندی عکس کی موجوددی اشاره وکړوو داسی وایو :-



هَذَا أَبٌ . داپلاردی

کله چه په دغه لاندی عکس کی زوی ته اشاره کوو نو داسی وایو:-



هَذَا ابْنٌ . دازوی دی .

کله چه دغو لاندې عکسونه اشاره کوونو داسې وایو :-



← هَذِهِ أُسْرَةٌ . داکورنۍ ده

← هَذِهِ أُمٌّ . دامور ده

← هَذِهِ اِبْنَةٌ دالور ده

عربي نومونه په دوو ډولو ویشل کیږي : مذکّر او مؤنث دیته متوجه اوسی چه د (أَبٌ – اِبْنٌ) کلمې مذکرې او د (أُسْرَةٌ–أُمٌّ–بِنْتٌ) کلمې مؤنثې دي .

همدا ډول دیته پام ولرئ چه مذکرو نومونو ته داشارې دپاره د (هٰذَا) له کلمې څخه او مؤنثو نومونو ته د (هٰذِهِ) له کلمې څخه کارا خلو .

ددرو کلموا ویا دووجملو دتړ لو دپاره له (و) ڼخه کار اخیستل کیږی .

وَ



← أَبٌ وَأُمٌّ
پلار او مور



← ابنٌ وبنتٌ
زوی او لور



← الأمّ والبنت
مور اولور



← الأَبُ وَ الابْنُ
پلار اوزوی



هَذِهِ أُمٌّ
دامورده

وَ
اوه

هَذَا أَبٌ
د اپلاردی

نوم په یوه شي باندي دنامه دایښودلو دپاره استعمالیږي

## اِسْمٌ

دکورنی دغړو نومونه د هغوی ترعکسولاندی لیکل شوی دی




لطفا له ښی خوا نخخه چپی خواته ولولی :-

← سَالِم هِنْد نَبِيل نِهَاد

← اِسْمُ الْأَبِ سَالِم .

دپلار نوم سالم دی



← اِسْمُ الْأُمِّ هِنْد .

دمور نوم هنددی



← اِسْمُ الِابْنِ نَبِيل .

دزوی نوم نبیل دی



← اِسْمُ الِابْنَةِ نِهَاد

دلور نوم نهاددی



## تمرینونه

### لمړی تمرین

دالاندې کلمې څوواری ولولې :

| ← أُمٌّ | أُسْرَةٌ | أَبٌ | إِبْنَةٌ | إِبْنٌ |
|---|---|---|---|---|
| اَلْأُمُّ | اَلْأُسْرَةُ | اَلْأَبُ | الإِبْنَةُ | الاِبْنُ |

### دوم تمرین

دالاندې جملې په جګ غږ ولولې:

هَذَا سَالِم . سَالِم أَبٌ . هَذِهِ هِنْد وَهَذَا نَبِيل

هَذِهِ نِهَاد . نِهَاد إِبْنَةٌ . اِسْمُ هَذَا الاِبْنِ نَبِيل .

### دریم تمرین

دالاندې جملې له هغو کلمو څخه په مناسبو کلمو باندې پوره کړې چه دهري جملې په مقابل کې دقوسو په منځ کې دي :

اِسْمُ الاِبْنِ . . . . .          ( نِهَاد - نَبِيل - سَالِم )

اِسْمُ الأُمِّ . . . . . .          ( سَالِم - نِهَاد - هِنْد )

اِسْمُ الإِبْنَةِ . . . . . .          ( نَبِيل - هِنْد - نِهَاد )

اِسْمُ الأَبِ . . . . . .          ( هِنْد - سَالِم - نَبِيل )

### څلورم تمرین

دالاندې جملې څوواری ولیکې :

سَالِم أَبٌ - هَذِهِ هِنْد - إِسْمُ الإِبْنَةِ نِهَاد .

## اَلدَّرْسُ الثَّانِي

### دوهم درس

لاندینی لمړی عکس ته وګوری .هغه دیوه کور عکس دی



بَيْتٌ
کور

داچه داکورپه سالم پوری اړه لری نوداسی وایو
بیت سالم = دسالم کور
کله چه دسالم کورته اشاره کوو نوداسی وایو :



هَذَا بَيْتُ سَالِمٍ .
داد سالم کوردی.

د اشخا صو په هکله دپوښتنې دپاره د(مَنْ) کلمه استعمالوو .

مَنْ . . . ؟



مَنْ هٰذَا ؟
د اخوک دی ؟



هٰذَا سَالِم .
داسالم دی :
همدا راز وايو :



مَنْ هٰذِهٖ ؟
دا څوک ده

هٰذِهٖ نِهَاد .
دا نهاد ده .







| بَابٌ | مَكْتَبٌ | كُرْسِيٌّ |
|---|---|---|
| ور | ميز | چوکۍ |







| نَافِذَةٌ | سِتَارَةٌ | رَادْيُو |
|---|---|---|
| کړکۍ | پرده | راديو |

| بَابٌ | مَكْتَبٌ | كُرْسِيٌّ |
|---|---|---|
| نَافِذَةٌ | سِتَارَةٌ | رَادْيُو |

کله چه له تيرو کلمو سره «ال» زيات کړو نوداسې يې تلفظ کوو:

اَلْبَابُ اَلْمَكْتَبُ اَلْكُرْسِيُّ

اَلنَّافِذَةُ اَلسَّتَارَةُ اَلرَّادْيُو

ديته پام وکړئ چه په پور تنيو کلمو کې د « ال » تلفظ يو له بل سره بيل دی د ( البابُ - المكتبُ - الكرسيُّ ) په کلمو کې « ال » بيله کوم تغير نخه تلفظ کيږي خو د(النَّافِذَةُ - السَّتَارَةُ - اَلرَّادْيُو) په کلمو کې له (ال ) نخه لام نه تلفظ کيږي اوله هغې نه وروسته توری ته شد ورکول کيږي مثلا د ( النَّافِذَةُ ) کلمه داسې تلفظ کيږي ( اَنَّافِذَةُ ).

له يوه شي ښخه دپوښتنې دپاره د «ما» کلمه استعمالوو

مَا . . . ؟

مَا هَذَا ؟ داڅه شي دی (مذکر)



هَذَا رَادْيُو . دا راديو ده .

مَاهَذِهِ ؟ داڅه شي ده (مؤنث)



هَذِهِ سِتَارَةٌ . داپرده ده .

**دچا یاځه شی دځای دپو ښتلودپاره د« أین » کلمه استعمالوو**

أَیْنَ ...؟

**دهغی پوښتنی په جواب کی چه د(أین) په کلمه پیل شوی وی کیدای شی چه په لاندی کلمو سره جواب ورکړو.**

| أَمَامَ<br>په مخکی | أَوْ<br>یا | فِی<br>په ...کښی | أَوْ<br>یا | وَرَاءَ<br>شاته |
|---|---|---|---|---|

1

أَیْنَ نَبِیل ؟
نبیل چیرته دی ؟

نَبِیلِ أَمَامَ الرَّادْیُو.
نبیل درادیو په مخکی دی .



أَیْنَ الْأَبُ ؟
پلارچیرته دی؟

اَلْأَبُ وَرَاءَ الْمَكْتَب .
پلاردمیزشاته دي

أَیْنَ الْأُسْرَةُ ؟
کورنی چیرته ده؟

اَلْأُسْرَةُ فِی الْبَیْت .
کورنی په کورکي ده



دکوم چاپه هکله دپوښتني دپاره د (مَنْ) کلمة اودکوم شی څخه
دپوښتني دپارة د (مَا) کلمه اوله ځای څخه دپو ښتني دپاره د (أَيْنَ) کلمه
استعمالوو :

مَنْ هٰذِهِ ؟
داڅوك ده ؟

هٰذِهِ نِهَاد .
دا نهادده

مَا هٰذَا ؟
داڅه شي دی؟

هٰذَا كُرْسِيٌّ .
داچوکي ده



أَيْنَ الْكُرْسِيُّ ؟
چوکي چيرته ده ؟

الْكُرْسِيُّ أَمَامَ نِهَاد .
چوکي دنها دپه مخکي ده .

## تمرینونه

### لمړی تمرین

دالاندی جملي څوواري ولولی

هَذَا مَكْتَبٌ .    هَذَا كُرْسِيٌّ .    هَذَا نَبِيل .

هَذِهِ هِنْد .    هَذِهِ نَافِذَةٌ .    هَذِهِ سَتَارَةٌ .

### دوم تمرین

په لاندی جملوكي دهري پوښتني دپاره دهغي مناسب جواب كيږدی

(١) مَا هَذَا ؟    اَلْكُرْسِيُّ أَمَامَ الْبَابِ .

(٢) مَنْ هَذِهِ ؟    هَذَا بَيْتُ سالِم .

(٣) أَيْنَ الْكُرْسِيُّ ؟    هَذِهِ نِهاد .

### دریم تمرین

دالاندی جملي دقوسوله منځ څخه په مناسبوعبارتوسره بشپړی کړی

أُسْرَةُ سَالِم . . . . . . .    ( أَمَامَ الرَّادْيُو – فِي الْبَيْتِ ) .

اَلْكُرْسِيُّ وَرَاءَ . . . . .    ( النَّافِذَةِ – الْمَكْتَبِ – الْبَابِ ) .

# اَلدَّرْسُ الثَّالِثُ

## دريم درس

لاندی عکس ته وګوري اولاندې پوښتنه اوجواب په جګ غږولولی



| | |
|---|---|
| مَا هٰذِهٖ ؟ | هٰذِهٖ مَدْرَسَةٌ . |
| داڅه شی ده؟ | دا ښوونځی دی. |

**دي لاندي عکسونه وګوری ترهغولاندي کلمي عادتاپه ښونځي کي استعمالوو**



مُدَرِّسٌ

ښوونکي



مُدِيرٌ

مدير



تِلْمِيذٌ

زده کونکی (مذکر)

تِلْمِيذَةٌ

زده کونکي (مؤنث)

**دالاندي کلمی څوواري ولولی .**

مُدَرِّسٌ  مُدِيرٌ  تِلْمِيذٌ  تِلْمِيذَةٌ

کله چه نبیل له خپل ځان خخه غږیږي وایی :



أنَا — زه

کله چه نهاد له خپل ځان خخه غږیږی وایی :



أنَا — زه :

نبیل دځان دمعرفی کولودپاره وایی.



اِسْمِي — زمانوم .

نهاد دځان دمعرفی کولو دپاره وایی :



اِسْمِي — زمانوم.

کله چه نبیل له خپل ځان څخه غږیږی وایی :



أنا تلمیذ.

زه زده کونکی یم (مذکر)

إِسْمِي نَبِيل .

زمانوم نبیل دی.

کله چه نهاد له خپل ځان څخه غږیږی وایی :



أَنَا تِلْمِيذَةٌ .

زه زده کونکي یم (مؤنث)

إِسْمِي نِهَاد .

زمانوم نهادده

کله چه نهاد له خپل ځان څخه غږیږی وایی :

أَنَا أُمٌّ .

زه موریم .

إِسْمِي هِنْد .

زمانوم هند دي

کله چه نهاد له خپل ځان څخه غږیږی وایی :





أَنَا مُدَرِّسٌ .

زه ښونکي یم

إِسْمِي سَالِم .

زمانوم سالم دي.

کله چه داپو ښتنه وکړو چه دسالم دکورنی یوغړی چیرته دی نووایو :

| فِی الْمَدْرَسَةِ | أَوْ | فِی الْبَیْتِ |
| --- | --- | --- |
| په ښونځی کی | یا | په کورکی |

همدا راز وایو :



سَالِم مُدَرِّس . سَالِم فِی الْمَدْرَسَةِ .
سالم ښونکی دی سالم په ښونځی کی دی



هِنْد أُمٌّ . هِنْد فِی الْبَیْتِ .
هند مورده هند په کورکی ده



نَبِیل تِلْمِیذٌ . نَبِیل فِی الْمَدْرَسَةِ
نبیل زده کونکی دی نبیل په ښونځی کی دی

کوم چاته دنارو اوغږ دپاره په عربی ژبه کی داکلمه په کاراچوو :

يَا

په دی اساس وایو :

يَا سَالِم يَا نَبِيل يَا هِنْد يَا نِهَاد

د مفرد مذکر مخاطب دپاره داضمیر استعمالوو :



أَنْتَ
ته (مذکر)

اود مفرد مؤنث مخاطب دپاره داضمیر استعمالوو

أَنْتِ
ته (مؤنث)

په دی اساس وایو :

أَنْتَ سَالِم
ته سالم یی

أَنْتِ هِنْد
ته هندیی

دالاندې پوښتنې اوجوابونه په جګ غږ ولولې:



أَيْنَ أَنْتَ يَا نَبِيل ؟ أَنَا أَمَامَ الرَّادْيُو .

ته چیرته یې ای نبیله ؟ زه درادیو په مخکې یم.



أَيْنَ أَنْتِ يَا هِنْد ؟ أَنَا وَرَاءَ الْبَابِ .

ته چیرته یې ای هندې؟ زه ددروازې شاته یم.



أَيْنَ أَنْتَ يَا سَالِم ؟ أَنَا أَمَامَ الْمَكْتَب .

ته چیرته یې ای سالمه ؟ زه دمیز په مخکې یم.



أَيْنَ أَنْتِ يَا نِهَاد ؟ أَنَا وَرَاءَ السِّتَارَةِ .

ته چیرته یې ای نهادې؟ زه دپردې شاته یم

## تمرینونه

### لمړي تمرین

دالاندې جملې څوواری په جګ غږ ولولئ :

نَبِيل تِلْمِيذٌ وَنِهَاد تِلْمِيذَةٌ .   نَبِيل وَنِهَاد فِي الْمَدْرَسَةِ .
سَالِم مُدَرِّسٌ فِي الْمَدْرَسَةِ .

### دوم تمرین

دی لاندې پوښتنوته دهغو مناسب جواب غوره کړی

(۱) أَيْنَ الرَّادْيُو يَا نَبِيل ؟   أَنَا وَرَاءَ السِّتَارَةِ يَا نَبِيل .
(۲) أَيْنَ أَنْتِ يَا نِهَاد ؟   هَذِهِ نِهَادُ بِنْتُ سَالِم .
(۳) مَنْ هَذِهِ الْبِنْتُ ؟   اَلرَّادْيُو فِي الْبَيْتِ يَا نِهَاد .

### دریم تمرین .

دالاندې کلمې د سمې جملې په ډول ولیکئ

(۱) اَلْمَدْرَسَةِ – فِي – تِلْمِيذَةٌ – نِهَاد .
(۲) فِي الْبَيْتِ – هِنْد – سَالِم – وَ – فِي الْمَدْرَسَةِ .

# اَلدَّرْسُ الرَّابِعُ

## څلورم درس



مَا هَذِهِ ؟      هَذِهِ حَدِيقَةٌ

داڅه شی ده ؟      داباغچه ده.

أين الجنينة ؟

باغچه چیرته ده ؟



الجنية في بيت سالم.

باغچه دسالم په کورکی ده .

هذه جنينةُ سالم .

داد سالم باغچه ده .

تاسی دسالم په باغچه کی داشیان وینی :



دسالم دباغچې په ستايلوکې ويلې شو:



فِي الْجُنَيْنَةِ بُسْتَانِيٌّ .
په باغچه کې باغوان دی



فِي الْجُنَيْنَةِ وَرْدٌ وَأَزْهَارٌ .
په باغچه کې ګلاب او ګلان دي



فِي الْجُنَيْنَةِ أَشْجَارٌ .
په باغچه کې ونې دي



فِي الْجُنَيْنَةِ أَزْهَارٌ .
په باغچه کې ګلان دي



فِي الْجُنَيْنَةِ بِرْكَةٌ .
په باغچه کې ډنډ دی



فِي الْبِرْكَةِ سَمَكٌ .
په ډنډ کې ماهي (ماهيان) دي

**دی لاند عکسوته وګوری اودهغوا پرونده پوښتنی او جوابونه ولولی**



أَيْنَ الْأَشْجَارُ ؟
ونی چیرته دی ؟

اَلْأَشْجَارُ فِی الْحَدِیقَةِ .
ونی په باغچه کی دی



أَيْنَ الزُّهُورُ
ګلان چیرته دی ؟

الزُّهُورُ بِجِوَارِ السُّورِ .
ګلان ددیوال څنګ ته دی



أَيْنَ السَّمَكُ ؟
ماهی (ماهیان) چیرته دی؟

اَلسَّمَكُ فِی الْبُحَیْرَةِ
ماهی(ماهیان) په ډنډ کی دی؛

أَيْنَ الْبُسْتَانِیُّ ؟
باغوان چیرته دی ؟

اَلْبُسْتَانِیُّ بِجِوَارِ الزُّهُورِ
باغوان دګلانوپه څنګ کی دی

دالاندې جملې کيداى شي چه دسالم دباغچې په ستاېلوکې استعمال شي .



هَذَا سُورُ الحَدِيقَةِ

داد باغچې ديوال دى



هَذَا بُسْتَانِيُّ الحَدِيقَةِ

داد باغچې باغوان دى



هَذِهِ زَهْرَةُ فُلٍّ .

داد رامبيل گل دى



هَذِهِ زَهْرَةُ بَنَفْسَجٍ .

داد بنفشې گل دى .



هَذِهِ شَجَرَةُ وَرْدٍ .

داد گلاپو ونه (بوټى) ده



هَذِهِ شَجَرَةُ مِشْمِشٍ .

داد دزردالو ونه ده .

په لاندی جمله کي مضاف اومضاف اليه ته پام وکړی :

| هَذَا سُورُ الْحَدِيقَةِ |
|---|
| دا دباغچي ديوال دی |

د لاندی جملي مضاف او مضاف اليه دی :

| بَيْتُ سَالِمٍ | مَدْرَسَةُ نَبِيلٍ |
|---|---|
| د سالم کور | دنبيل ښوونځی |

| شَجَرَةُ وَرْدٍ | شَجَرَةُ مِشْمِشٍ |
|---|---|
| دګلاپو ونه (بوټی) | دزرد الوونه. |

دهغوشیا نو په ستایلوکي چه د سالم په باغچه کي موجودی
داسي ویلي شو :







شَجَرَةُ الْوَرْدِ جَمِيلَةٌ .

دګلا پوونه ښایسته ده

شَجَرَةُ الْمِشْمِشِ كَبِيرَةٌ.

دزرد الوونه غټه ده





زَهْرَةُ الْفُلِّ جَمِيلَةٌ.

درامبیل گل ښکلي دي

زَهْرَةُ الْبَنَفْسَجِ جَمِيلَةٌ .

دبنفشي گل ښکلي دي :





سُورُ الْحَدِيقَةِ جَمِيلٌ .

سور الجنينه جميل

دباغچي دیوال ښکلي دي.

بُسْتَانِي الْحَدِيقَةِ نَظِيف

بستاني الجنبية أمين

دباغچي باغوان امانت کار (أمين) دي.

## تمرینونه

لمړی تمرین :

دالاندی جملي په جگ غږ ولولی :

هَذِهِ زَهْرَةُ فُلٍّ .　　　هَذِهِ زَهْرَةُ بَنَفْسَجٍ .

زَهْرَةُ الْفُلِّ جَمِيلَةٌ　　　زَهْرَةُ الْبَنَفْسَجِ جَمِيلَةٌ .

هذِهِ شجرة مِشْمِشٍ ...........................

هَذه شَجَرَةُ وردٍ ...........................

دوم تمرین :

دالاندی هره جمله دقوسو له منځه په یوه مناسبه کلمه باندی بشپړه کړی

(۱) بُسْتَانِيُّ الْحَدِيقَةِ . . . . (كَبِيرٌ - نَظِيفٌ)

(۲) سُورُ الْحَدِيقَةِ . . . . . (جَمِيلٌ - أَمِينٌ)

(۳) اَلأَسْمَاكُ فِي ................ (الْبُحَيْرَةِ - الْحَدِيقَةِ)

دریم تمرین :

دالاندی کلمي دسمي جملي په شکل ولیکی

(۱) اَلْحَدِيقَةُ - بَيْتٍ - هَذِهِ - سَالِم - فِي

(۲) أَزْهَارٌ - فِي - سَالِم - وَأَشْجَارٌ - حَدِيقَةِ

# اَلدَّرْسُ الْخَامِسُ

## پنځم درس



هَٰذِهِ أُسْرَةُ سَالِمٍ .

داد سالم كورنۍ ده



هَٰذِهِ حَدِيقَةُ سَالِمٍ .

داد سالم باغچه ده



أُسْرَةُ سَالِمٍ فِي الْحَدِيقَةِ

دسالم كورنۍ په باغچه كې ده

## تردی عکسو لاندی کلمې ولولی :



که چیرته دتیرمخ له کلموسره دتعریف توری (ال) زیات کړو نودا کلمي معرفه کیږی اوداسي لوستلی کیږی :

| اَلسَّمَكَةُ | اَلْجَرِيدَةُ | اَلْفَرَاشَةُ |
|---|---|---|
| ماهی | جریده | پتنگ |
| اَلْيَدُ | اَلكَلْبُ | اَلْكُرَةُ |
| لاس | سپی | توپ |
| اَلْكِتَابُ | اَلفَمُ | اَلذَّيْلُ |
| کتاب | خوله | لکی |

نبیل په باغچه کې دی نوهغه هلته څه کوی؟

لاندی عکسونه وگوری اود هغو ښی خواته جملي په جگ غږ ولولی



نَبِیل یَجْرِی فِی الْحَدِیقَة .

نبیل په باغچه کی منډی وهي

نَبِیلُ یَجْرِی وَرَاءَ الْکُرَةِ .

نبیل په توپ پسی ځغلی





اَلْکُرَةُ تَنْزِلُ فِی الْبِرْکَةِ .

توپ په ډ نډکی لوېږی





نَبِیلٌ یَبْکِی أَمَامَ الْبِرْکَةِ .

نبیل د ډ نډ په مخکي ژاړی



اَلْكَلْبُ يَنْزِلُ فِى الْبِرْكَةِ .

سپی په د نړ کی کته کیږی



اَلْكُرَةُ فِى فَمِ الْكَلْبِ .

توپ دسپی په خوله کی دی.



اَلْكُرَةُ فِى يَدِ نَبِيل .

توپ دنبیل په لاس کي دی



اَلْكَلْبُ يَهُزُّ ذَيْلَهُ .

سپي خپله لکي ښوروی

نهاد په باغ کې د ۵ نوهغه هلته څه کوي

لا ندې عکسونه وګورى اودعکسو بښې خواته جملې په ځګ غږ ولولئ :



نِهَاد تَجْلِسُ بِجِوارِ الْأَزْهَارِ .

نهاد دګلانو څنګ ته کيني



نِهَاد تَرْسُمُ شَجَرَةً .

نهاد ونه رسموي



نِهَاد تَجْلِسُ بِجِوارِ الْأَشْجَارِ .

نهاد دونو څنګ ته کيني

نِهَادُ تَرْسُمُ سَمَكَةً .



نهاد ماهي رسموي.

نِهَادُ تَجْلِسُ بِجِوَارِ الْبُحَيْرَةِ



نهاد دډنډ څنګ ته کيني

نِهَادُ تَرْسُمُ زَهْرَةً .



نهاد گل رسموي



نِهَاد تَجْلِسُ بِجِوَارِ السُّورِ.

نهاد ددیوال په خنگ کې کیني



نِهَاد تَرْسُمُ فَرَاشَةً .

نهاد پتنگ رسموی

دیته پام وکړی چه هغه فعل چه په (یـ) شروع کیږی د مفرد غائب مذکر دپاره .أو هغه فعل چه په (ت) شروع کیږی دمفرد مؤنث دپاره استعمالیږی

سَالِمٌ يَجْلِسُ.

هِنْد تَجْلِسُ.

نَبِيل يَجْرِي .

نِهَاد تَجْرِي .

## تمرینونه

لمړی تمرین : د الاندی پوښتنی او جوابونه ولولی :

| | |
|---|---|
| أَيْنَ يَجْلِسُ سَالِم ؟ | سَالِم يَجْلِسُ بِجِوَارِ الشَّجَرَةِ . |
| أَيْنَ يَجْرِي نَبِيل ؟ | نَبِيل يَجْرِي فِي الْحَدِيقَةِ . |
| أَيْنَ تَجْلِسُ هِنْد ؟ | هِنْد تَجْلِسُ بِجِوَارِ سَالِم . |
| أَيْنَ تَجْرِي نِهَاد ؟ | نِهَاد تَجْرِي فِي الْحَدِيقَةِ . |

دوم تمرین

دالاندی جملی هره یوه دقوسوله منځه په مناسبه کلمه بشپړه کړی

(١) اَلْكُرَةُ فِي يَدِ . . . . . . ( سَالِم - هِنْد - نَبِيل )

(٢) الْكُرَة فِي فَم ( نَبِيل - الْقِطَة - الْكَلْب )

(٣) اَلْجَرِيدَةُ فِي يَد . . . . . ( نِهَاد - سَالِم - هِنْد )

(٤) نَبِيل يَبْكِي أَمَامَ ....... (الْكُرَة - الْكَلْب - الْبِرْكَة)

دریم تمرین

دالاندی جملی خوواری ولیکی

اَلْكَلْبُ يَهُزُّ ذَيْلَهُ . فَمُ الْكَلْبِ كَبِيرٌ

# اَلدَّرْسُ السَّادِسُ

## شپږم درس



مَنْ هٰذَا ؟
داڅوک دی ؟

هٰذَا رَاشِد .
داراشددی.



هٰذَا بَيْتُ رَاشِد .
دادرا شد کور دی.



هٰذِهِ أُسْرَةُ رَاشِد .
دادرا شد کور نی ده

دراشد دکورنی پنځه تنه غړی دادي:



راشِد

راشِدٌ مُهَندِسٌ.

وِدادُ زوجةُ راشِدٍ

وداد دراشد ماندینه ده





وِدادُ - زَوجَةُ راشِد

إلهامُ - اِبنَةُ راشِدٍ

إلهام - دراشد لورده





نايِل - اِبنَ راشِد

أشرَف - اِبنُ راشِد

نایل دراشدزوی دی

أشرف دراشد زوی دی

## راشد اوسالم ملگری او گاونډیان دی په دی اساس ویلی شو



بَيْتُ رَاشِدٍ بِجِوَارِ بَيْتِ سَالِمٍ.
دراشد کور دسالم دکور څنګ ته دی

رَاشِدٌ يَسْكُنُ بِجِوَارِ سَالِمٍ.
راشد دسالم په څنګ کی او سیږی



رَاشِدٌ جَارُ سَالِمٍ.
راشد دسالم ګاونډی دی

وَ سَالِمٌ جَارُ رَاشِدٍ.
او سالم دراشد ګاونډی دی



أُسْرَةُ رَاشِدٍ فِي بَيْتِ سَالِمٍ.
دراشد کورنۍ دسالم په کورکی ده

أُسْرَةُ رَاشِدٍ تَزُورُ أُسْرَةَ سَالِمٍ.
دراشد کورنۍ دسالم دکورنۍ کتنه کوی

مخکې له دې چه له میلمستیا ځخه وغږیږو ترلاندې عکسو لاندې کلموته پام وکړې .



شُرْفَةٌ
برنډه



فِنْجَانُ شَايٍ
دچای پیاله



کُوبٌ
گیلاس



عَصِيرُ مِشْمِشٍ
دزردالوشربت



سُكَّرٌ
بوره



لَبَنٌ
شیدې



هِنْد تَمْلأُ . .
هند .... ډکوی



وِدَاد تَشْرَبُ . .
وداد چیښې



إلْهَام تَشْكُرُ . .
إلهام مننه ( تشکر) کوی

اوس دميلمستيا په باره كى غوره دالاندى جملى په جگ غږ ولولى

أُسْرَةُ رَاشِدٍ تَزُورُ أُسْرَةَ سَالِمٍ.

دراشد كورنى دسالم دكورنى كتنه كوى



أُسْرَةُ رَاشِد تَجْلِسُ فِي الشُّرْفَةِ

دراشد كورنى په برنډه كى كيني



فِي يَدِ رَاشِد فِنْجَانُ شَايٍ .

دراشد په لاس كى دچاى پياله ده



فِي يَدِ وِدَاد فِنْجَانُ شَايٍ .

دوداد په لاس كى دچاى پياله ده

فِي يَدِ نَايِل كُوبٌ .
دنايل په لاس کی گیلاس دی

فِي الْكُوبِ عَصِيرُ مِشْمِش .
په گیلاس کی دزرد آلوشربت دی

فِي يَدِ أَشْرَف كُوبٌ .
دأشرف په لاس کی گیلاس دی

فِي الْكُوبِ لَبَنٌ وَسُكَّرٌ .
په گیلاس کی شیدی او بوره ده



نِهَاد تَمْلَأُ الْكُوبَ .
نهاد گیلاس ډکوی

إِلْهَام تَشْكُرُ نِهَادَ .
إلهام له نهاد څخه مننه کوی .

أُسْرَةُ رَاشِد تَشْكُرُ أُسْرَةَ سَالِم
دراشد کورنی دسالم له کورنی څخه
مننه کوی .

دی لاند عکسونه وګوری اوتر هغولاندی جملی په جګ غږ ولولی



نَبِيل يَجْرِي وَرَاءَ أَشْرَف
نبیل په أشرف پسی منډی وهی

أَشْرَفُ يَجْرِي أَمَامَ نَبِيل
أشرف دنبیل په مخکی منډی وهی



نَايِلٌ يَجْرِي وَرَاءَ الْكَلْبِ
نایل په سپی پسی منډی وهی

اَلْكَلْبُ يَجْرِي أَمَامَ نَايِل
سپی دنایل په مخکی ځغلی



إِلْهَام تَجْرِي وَرَاءَ الْكُرَةِ
الهام په توپ پسی ځغلی

نِهَاد تَجْرِي وَرَاءَ إِلْهَام
نهاد په الهام پسی منډی وهی

ټول خو شحاله دي په دي اساس وايو :





نَبِيلٌ مَسْرُورٌ

نبيل خوشحاله دی

أَشْرَفُ مَسْرُورٌ

أشرف خوشحاله دی



نَايِلٌ مَسْرُورٌ

نايل خوشحاله دی





إِلْهَامٌ مَسْرُورَةٌ .

إلهام خوشحاله ده

نِهَادٌ مَسْرُورَةٌ

نهاد خوشحاله ده

ديته خير شی چه له نبيل - اشرف او نايل سره چه مفرد مذكردی مسرور (خو شحاله) استعمالوو او له الهام او نهاد سره چه مفرد مؤنث دی مسرورة (خو شحاله) استعمالوو .

## لمړی تمرین

**دالاندې جملې څو وارې ولولئ .**

أُسْرَةُ رَاشِد تَسْكُنُ بِجِوَارِ أُسْرَةِ سَالِمٍ . أُسْرَةُ رَاشِدٍ تَزُورُ أُسْرَةَ سَالِمٍ .
أُسْرَةُ سَالِمٍ مَسْرُورَةٌ .

**دوم تمرین :**

**دالاندې جملې دقوسوله منځه په مناسب عبارت یاکلمه بشپړې کړی .**

(١) أُسْرَةُ رَاشِد تَجْلِسُ . . . . . ( فِي الشُّرْفَةِ – فِي الحَدِيقَةِ )
(٢) فِي يَدِ أَشْرَفَ . . . . . ( فِنْجَانُ شَايٍ – كُوبٌ )
(٣) فِي يَدِ وِدَادَ . . . . . ( فِنْجَانُ شَايٍ – كُوبٌ )

**دریم تمرین :**

**دالاندې کلمې دصحیح جملو په شکل ولیکئ**

(١) رَاشِد – سَالِم – أُسْرَةُ – أُسْرَةَ – تُشْكُرُ
(٢) الْكُوبَ – وَ – نِهَاد – إِلْهَام – تَمْلَأُ – تَشْرَبُ .
(٣) سُكَّرٌ – لَبَنٌ – فِي – وَ – الْكُوبِ – هَذَا .

# اَلدَّرْسُ السَّابِعُ

## اوم درس



مَا هٰذَا ؟ هٰذَا دكان اَلْفَوَاكِهِ

داڅه شی دی ؟ داد میوو دکان دی



دكان اَلْفَوَاكِهِ بِجِوَارِ بَيْتِ سَالِمٍ

دمیوو دکان دسالم دکور په خنګ کی دی



شَكْلُ الْفَوَاكِهِ جَمِيلٌ

دمیوو شکل ښکلي دی .

دمیوو په دکان کی داشیان دی .



| اَلْفَاكِهِيُّ | اَلْمِيزَانُ | اَلسَّلَّةُ |
|---|---|---|
| میوه پلورونکی | تله | توکری |





| اَلْمَوْزُ | اَلْمِشْمِشُ | اَلتِّينُ |
|---|---|---|
| کیله (کیلی) | زردالو | انځر |

فِي مَحَلِّ الْفَوَاكِهِ مِشْمِشٌ ، وَمَوْزٌ ، وَتِينٌ .

دمیوو په دکان کی زردالو ، کیلی اوانځری دی

اَلْفَاكِهِيُّ يَزِنُ الْفَوَاكِهَ فِي الْمِيزَانِ .

میوه پلورونکی میوی په تله تلی .



**دالاندي جملې په جګ غږ ولولئ :**

الْأُمُّ تَسْأَلُ : مَاذَا تُرِيدُ مِنَ الْفَوَاكِهِ يَا نَبِيل؟

**مور پوښتنه کوي : کومې ميوې غواړې اې نبيله ؟**

نَبِيل يُجِيبُ : أَنَا أُرِيدُ الْمِشْمِش

**نبيل جواب ورکوي زه زردالو غواړم**



الْأُمُّ تَسْأَلُ : وَأَنْتِ يَا نِهَاد ؟

**مور پوښتنه کوي أوته اې نهادې**



نِهَاد تُجِيبُ : أَنَا أُرِيدُ الْمَوْزَ

**نهاد جواب ورکوي : زه کيلې غواړم ۰**



اَلْأُمُّ تَسْأَلُ :
مور پوښتنه کوي :

وأَنْتَ يَا سَالِمُ ؟
او ته اي سالمه؟



سَالِمٌ يُجِيبُ :
سالم جواب ورکوي:

أَنَا أُرِيدُ التِّينَ
زه انځر غواړم

دالاندي فعلونه يادکړی :

يُرِيدُ
يَجْلِسُ
يَشْرَبُ
يُمْسِكُ

د الاندي فعلونه د مفرد متکلم (غږ يدونکي) دپاره استعماليږي اوله هغونه مخکي د أنا (زه) ضمير راځي :

أَنَا أُرِيدُ
أَنَا أَجْلِسُ
أَنَا أَشْرَبُ
أَنَا أُمْسِكُ

کله چه هند له کوره څخه ووزی او دمیوو دکان ته ولاړه شی توموړ داسي وایو



هِنْد تَنْزِلُ مِنَ الْبَيْتِ

هند له کوره کته کیږی



هِنْد تُمْسِكُ سَلَّةً كَبِيرَةً

هند یوه غټه ټوکری اخلی





هِنْد فِي مَحَلِّ الْفَوَاكِهِ

هند دمیوو په دکان کی ده

هِنْد تَشْتَرِي الْفَوَاكِهَ

هند میوی رانیسی (اخلی)



هِنْد تُمْسِكُ الْمَوْزَ

هند کیلی په لاس کي نیسی



اَلْفَاكِهِيُّ يَزِنُ الْمَوْزَ

میوه پلورونکي کیلي تلي

دميوو په دکان کې وېلي شو :-





هِنْد تَشْتَرِی التِّینَ وَالْمِشْمِشَ
هند انځر او زرد الو اخلی (رانیسي)

اَلْفَاكِهِيُّ يَزِنُ الْمِشْمِشَ
میوه پلورونکی زرد الوتلی





هَذَا تِینٌ
دا انځر دی

هِنْد تُمْسِكُ الْفَوَاكِهَ
هند میوی په لاس کی نیسی





اَلْفَوَاكِهُ فِی السَّلَّةِ
میوی په ټوکری کی دی

اَلسَّلَّةُ فِی یَدِ هِنْد
ټوکری د هند په لاس کی ده.

**دوغی کورنی هرغړی ناشته دی او میوه خوری**

**لاندی عکسونه وگوری ارد هغو اوونده پوښتنه او جواب په جگ غږو لولی**

مَاذَا يَأْكُلُ نَبِيلٌ ؟
**نبیل څه شی خوری ؟**



نَبِيلٌ يَأْكُلُ الْمِشْمِشَ
**نبیل زرد الو خوری**

مَاذَا تَأْكُلُ نِهَادُ ؟
**نهاد څه شی خوری ؟**



نِهَادُ تَأْكُلُ الْمَوْزَ
**نهاد کیلی خوری**

مَاذَا يَأْكُلُ سَالِمٌ ؟
**سالم څه شی خوری؟**



سَالِم يَأْكُلُ التِّينَ
**سالم انځر خوری،**

مَاذَا تَأْكُلُ هِنْدُ ؟
**هند څه شی خوری؟**



هِنْد تَأْكُلُ الْمَوْزَ
**هند کیلی خوری**

## تمرینونه

### لمړی تمرین

**دالاندې جملې په جګ غږ ولولئ:**

مَاذَا تُرِيدُ يَا سَالِم ؟ أَنَا أُرِيدُ التِّينَ.

أَيْنَ تَجْلِسُ يَا نَبِيل ؟ أَنَا أَجْلِسُ فِي الشُّرْفَةِ .

مَاذَا تَشْرَبُ يَا أَشْرَفُ ؟ أَنَا أَشْرَبُ اللَّبَنَ .

### دوم تمرین

**دالاندې جملې دقوسو له منځه په مناسبو ټکو بشپړې کړئ**

(١) اَلْفَاكِهِيُّ يَزِنُ الْمَوْزَ فِي. . . ( السَّلَّةِ ـ الْمِيزَانِ )

(٢) هِنْدُ تَشْتَرِي الْفَوَاكِهَ مِنَ . . ( دُكَّانِ الْفَوَاكِهِ ـ الْمَدْرَسَةِ )

(٣) هِنْدُ تُمْسِكُ . . . . . ( زَهْرَةَ بَنَفْسَجٍ ـ سَلَّةً كَبِيرَةً )

### دریم تمرین

**له لاندې کلمو نه څخه صحیح جمله جوړه کړئ:**

التِّينَ ـ الْمِشْمِشَ ـ يَأْكُلُ ـ نِهَاد ـ وَنَبِيل ـ تَأْكُلُ .

# اَلدَّرْسُ الثَّامِنُ

## اتم درس

دالاند کلمی چه په تیرود روسوکی تیری شوی په جگ غږولولی

أَكَلَ سَأَلَ مَا

په دی کلمو کی گډتوری ته مخیرشی

أَكَلَ سَأَلَ مَلَأَ

دیته پام وکړی چه دالاندی توری په تیرو دریواړو کلمو کی راغلی دی : ۸

أ.... ....أ.... ....أ

داتوری الف نومیږی

أ

دالاندی کلمی په جگ غږ ولولی :

یُمْسِكُ  سَمَكَةٌ  كَلْبٌ

په دی لاندی کلمو کی هغه گډتوری ته څیرشی چه ترهغه لاندی خط کش شوی دی :

يُمْسِكُ  سَمَكَةٌ  كَلْبٌ

هغه گډتوری چه په دغودرو کلمو کی راغلی دادی :

كـ . . .  . . . ـكـ . . .  . . . ـك

داتوری (کاف) نومیږی :

كَاف =

ك = ك

---

دالاندی کلمی په جگ غږ ولولی :

مَكْتَبٌ  لَبَنٌ  بَيْتٌ

په دی لاندی کلمو کی هغه گډ توری ته پام وکړی چه ترهغه لاندی خط کش شوی دی :

مَكْتَبٌ  لَبَنٌ  بَيْتٌ

هغه توری چه په دغود ریو واړو کلمو کی راغلی دادی :

بـ . . .  . . . ـبـ . . .  . . . ـب

داتوری (ب) نومیږی.

بَاء =

ب

دالاندې کلمې په جګ غږ ولولې :

یَدٌ　　　　بَیتٌ　　　　شَایٌ

په دې لاندې کلمو کې هغه توري ته ځیرشې چه ترهغه لاندې خط کش شوی دی :

یَدٌ　　　　بَیتٌ　　　　شَایٌ

هغه توري چه په دغودریو واړو وکلمو کې راغلي دادي :

ی . . .　　　　. . . ی . . . .　　　　. . . ی

داتوري (ی) نومیږي ـ

یاء

ی

دالاندې کلمې په جګ غږ ولولې :

مَکتَبٌ　　　　سَمَكٌ　　　　سَالِمٌ

په دې لاندې کلموکې هغه ګوتوري ته ځیرشې چه ترهغه لاندې خط کش شوی دي :

مَکتَبٌ　　　　سَمَكٌ　　　　سَالِمٌ

مـ . . . .　　　　. . . ـمـ . . . .　　　　. . . . م

میم

دالاندې کلمې په جگ غږ ولولئ :

فَرَاشَةٌ　　　شُرْفَةٌ　　　أَشْرَفُ

په دې لاندې کلمو کې هغه گډتورې ته پام وکړئ چه ترهغه لاندې خط کش شوی دی :

فَرَاشَةٌ　　　شُرْفَةٌ　　　أَشْرَفُ

هغه گډ تورې چه په دغودرو کلمو کې راغلې دادي :

فـ . . . .　　　. . . . ـفـ . . . .　　　. . . ف

داتورې (ف) نو میږي

فَاء

ف

دالاندې کلمې په جگ غږ ولولئ :

السين

سَمَكٌ　　　مَدْرَسَةٌ　　　مُدَرِّسٌ

په دې لاندې کلمو کې گډ تورې ته پام وکړئ :

سَمَكٌ　　　مَدْرَسَةٌ　　　مدرس

په دعودریووارو کلمو کې گډ تورې دادي :

سـ . . .　　　. . . . ـسـ . . . .　　　. . . س

داتورې (سين) نو میږي

سِين

س

دالاندې کلمې په جګ غږ ولولئ .

شَجَرَةٌ　　فَرَاشَةٌ　　مِشْمِشٌ

په دې لاندې کلمو کې ګډتورې ته پام وکړئ :

شَـجَـرَةٌ　　فَـرَاشَـةٌ　　مِـشْـمِـشٌ

په دغو دریوواړو کلمو کې ګډ توری دادی :

شـ . . . .　　. . . شـ . . . .　　. . . . ش

داتورې (شین) نو میږي

شِین =

ش

---

دالاندې کلمې په جګ غږ ولولئ

جَمِيلٌ　　يَجْلِسُ　　يَتَفَسَّجُ

په دې لاندې کلمو کې ګډتورې ته پام وکړئ :

جَـمِـيـلٌ　　يَـجْـلِـسُ　　بَـنَـفْـسَـجٌ

په دغو دریوواړو کلمو کې ګډ توری دادی :

جـ . . . .　　. . . جـ . . . .　　. . . ج

داتورې (جیم) نو میږي

جیم =

ج

دالاندې کلمې په جګ غږ ولولئ .

هَذَا        مُهَنْدِسٌ        فَوَاكِهُ

په دې لاندې کلمو کې ګډتورې ته پام وکړئ :

هَذَا        مُهَنْدِسٌ        فَوَاكِهُ

په دغو درېیو واړو کلمو کې ګډ توری دادی :

هـ . . .        . . . ـهـ . . .        . . . ـه

دا توری (هـ) نومېږي

هَاء =

هـ = ـه

دالاندې کلمې چه مخکې مرزده کړې په جګ غږ ولولئ:

أَبٌ        كَلْبٌ        بَابٌ        يَجْلِسُ        مَوْزٌ

فِي        سَمَكَةٌ        يَشْرَبُ        جَمِيلَةٌ        هِنْد

تردې ځایه تاسې دالاندې توري پیژندلي دي :

أ  ك  ب  ى  م  ف  س  ش  ج  ه

تمرینونه

لمړی تمرین :

په لاندې قوسوکي دهرودروکلمو ترمنځ ګډ توری راوباسی

( كِتَاب – كُرْسِيّ – فَوَاكِهُ ) ( رَاشِد – أَشْجَارٌ – أُسْرَة )

( هِنْد – نِهَاد – إِلْهَام ) ( أَبٌ – تَسَاُلٌ – أُسْرَةٌ )

( قَمٌ – مُدِيرٌ – جَمِيلٌ ) ( بَيْتٌ – بَابٌ – اِبْنٌ )

دوم تمرین :

په لاندې کلمو کې خالي ځای دقوس له منځه توروخخه ډک کړی:

(١) اَلْ . . لَبُ يَ . . زُ دَ . . لَهُ . (ﮐَ – هُ – يْ – كَ)

(٢) فِي الـ . . حَيرة . . .

(٣) . . وزُ الحَد . . . قة جَمِيلٌ .

دریم تمرین :

دلاندې کلمو په خالي ځایوکی د(شین) توری کیږدی اوورامنځ ته شوې جمله په جګ غږ ولولی:

أ . . رَفُ يَ . . رَبُ فِنْجَانَ . . . اي

# اَلدَّرسُ التَّاسِع

## نهم درس

دالاندی لس توری چه په تیرو درسو کی تیرشوی یادکړی اود کلمو په اول ، منځ او اخیرکی دهغو شکل وپیژنی او دهرتوری نوم زده کړی .

| ی | ب | ک | أ |
|---|---|---|---|
| اَلْيَاءُ | اَلْبَاءُ | اَلْكَافُ | اَلْهَمْزَةُ |

| ش | س | ف | م |
|---|---|---|---|
| اَلشِّينُ | اَلسِّينُ | اَلْفَاءُ | اَلْمِيمُ |

| ه | ج |
|---|---|
| اَلْهَاءُ | اَلْجِيمُ |

دالاندی کلمی چه تاسی په تیرو درسوکی لیدلی په جګ، غږ ولولی :

أَشْرَف　　إِلْهَام　　أُسْرَةٌ　　يَأْكُلُ

په دغو لاندی کلمو کی د (الف) تلفظ ته پام وکړی :

أَشْرَف　　إِلْهَام　　أُسْرَةٌ　　يَأْكُلُ

له بیلو بیلو حرکتو سره همزی ته تحیر شی :

أَ　　إِ　　أُ　　أْ

په عربی ژبه کی دغو حرکتوته لنډ حرکتونه وایی او نومونه یی دادی :

دزرو حرکت َ (الفتحة)

دزیر حرکت (الکسرة)

دپیښ حرکت ُ (الضمة) .

اودا علامه(ه)دسکون علامه یاغږ وندی دي لکه چه د(یأکل)په کلمه کی یی وینی او هغه ته (غږ وندی ته) په عربي (السکون) ویل کیږی .

